**مارکسیزم او رفورمیزم ***

و. ا. لنین

مارکسیستان د انارشیستانو په خلاف، د اصلاحاتو لپاره مبارزه، یعنې هغه اقدامات چې د واکمنې طبقې د ځواک له نابودولو پرته، د زیارکښو وضعیت ښه کړي، په رسمیت پېژني. خو ورسره سم له رفرمیستانو سره، چې د کارګر طبقې موخې او کړنې په مستقیم یا نامستقیم ډول سره د اصلاحاتو ترلاسه کولو پورې، محدودوي، قاطع مبارزه کوي. رفورمیزم د کارګرانو بورژوایي چل ول دی چې دلته هلته د یو لړ رغاونې سره سره، تر څو چې د پانګې واکمني شتون ولري، د تېر په څېر به مزد اخېستونکي مریان پاتې وي.

لېبراله بورژوازي په یوه لاس اصلاحات رامنځته کوي او په بل لاس یې تل بېرته اخلي، د هېڅ تر کچې یې لږوي، له هغې څخه د کارګرانو د مریبتوب، د هغوې تر منځ د څو ډلو جوړولو او د مزدي مریتوب تلپاتې کېدو لپاره ګټه اخلي. له همدې کبله، رفورمیزم که آن صادقه او ربښتینې هم وي، خو په عمل کې په داسې وسلې بدلیږي چې بورژوازي د هغې په مټ کارګران فاسد او کمزوروي. د ټولو هېوادونو تجربې ښیي، چې کله هم کارګران پر رفورمیستانو اعتماد وکړي، تل دوکه ورکول کیږي.

برعکس هغه کارګرانو چې د مارکس تیوري جذب کړې ده، مطلب دا چې په دې پوه شوي چې مزدي مریتوب تر هغې چې پانګوالي واکمنه وي، حتمي ده، د بورژوازۍ په هیڅ ډول اصلاحاتو نه غولیږي. کارګران دې پوهې سره چې هر چېرې چې پانګونه وجود ولري، اصلاحات نشي کېدای چې اوږد مهاله او بنسټیزه وي، د ښو شرایطو لپاره جنګیږي او له اصلاحاتو څخه د مزدي مریتوب سره د مبارزې د چټکېدو لپاره کار اخلي. رفورمیستان هڅه کوي چې کارګران سره ووېشي او وغلوي، د لږو امتیازاتو په ورکولو سره، هغوی له طبقاتي مبارزې څخه منحرف کړي. خو هغه کارګران چې د رفورمیزم درواغجنې څېرې هغه لور هم ویني، له اصلاحاتو څخه د طبقاتي مبارزې بشپړتیا او پراختیا لپاره کار اخلي.

هر څومره چې رفورمیستي اغیزه په کارګرانو کې پیاوړې وي، هومره کارګران کمزوري، پر بورژوازۍ یې ډېره زیاته، او په بېلابېلو چلونو سره د بورژوازۍ لپاره د اصلاحاتو بې خاصیته کول، لا آسانه کیږي. هر څومره چې د کارګر طبقې غورځنګ خپلواک، موخې یې بنسټیزې او پراخې، او له رفورمیستي لنډ نظرۍ څخه آزاد وي، هومره به د اصلاحاتو تلپاتي کول او له هغو څخه ګټه پورته کول د کارګرانو لپاره آسانه وي.

په ټولو هېوادونو کې رفورمیستان شتون لري، ځکه بورژوازي هر چیرې په دې لټه کې ده چې له یوې یا بلې لارې څخه کارګران فاسده کړي، او هغوی په داسې خوشحاله مریانو بدل کړي چې له مریتوب څخه د خلاصون هر ډول اند یې له لاسه ورکړی وي.** په روسیې کې، رفورمیستان؛ انحلال غوښتونکي دي، هغه کسان چې غواړي زموږ تېر هیڅ وښایي او هغه نفي کړي، او هڅه کوي چې کارګران د یوه نوي، خلاص او قانوني ګوند په خوبونو کې، ویده کړي. په دې وروستیو کې سېفېرنایا (هماغه پراوډا) (Severnaya= Pravda) د سن پیټرزبورک انحلال غوښتونکي دې ته اړ کړل چې له ځانه د هغې تور په وړاندې دفاع وکړي چې دوې یې رفورمیست ګڼلي دي. د هغوی استدلالونه باید د یوې ډیرې ارزښتناکې پوښتنې د روښانه کېدو په خاطر، په ځیرتیا وڅېړل شي.

د سن پټرزبورګ انحلال غوښتونکو لیکلي دي چې موږ رفورمیستان نه یو، ځکه چې موږ نه دي ویلي چې رفرم هر څه دی او وروستی هدف اهمیت نلري؛ موږ د وروستي هدف لورې ته له حرکت څخه غږیدلي یو، موږ د اصلاحاتو لپاره د مبارزې د پرمختګ څخه غږیدلي یو چې د هغه په واسطه وکړای شوو خپل ټاکل شوي اهداف بشپړ کړای شو.

راځئ چې وګور دا دفاعیه د واقعیتونو سره څومره انطباق لري.
لومړی واقعیت: انحلال غوښتونکي سېدف (Sedov)، د ټولو انحلال غوښتونکو د وینااوو د لنډون وروسته، ولیکل چې د مارکسیستانو له "درې رکنو" څخه دوه یې نور زمونږ د تبلیغاتو لپاره مناسب نه دي. سېدف د اته ساعته ورځنی کار غوښتنه، چې له تیوریک پلوه یوه پلې کیدونکی رفرم دی، پخپل ځای پرېښودې ده. هغه ټول هغه څه چې د رفرم څخه بهر دي، حذف یا څنډې ته کړي دي. پایله دا چې سېدف د همغه سیاست د تعقیب سره چې فورمول یې "وروستی هدف، هیڅ دی" سره څرګندي، په قطعي توګه اپورتونیزم ته ستون شوی دی. کله چې "وروستی هدف" (ان د دموکراسی په اړوند) زمونږ له تبلیغاتو څخه لیرې او لیرې ځای ته شړل کیږي، دا رفورمیزم دی.

دویم واقعیت: د انحلال غوښتونکو د (تېر کال) د اګسټ میاشتې معروف کنفرانس، هم په همدې ډول، غیر رفورمېستي غوښتنې، ناڅرګنده وخت ته وځنډولې- تر هغه چې یې وخت راشي- د دې پرځای چې دغه غوښتنو ته لا زیات لومړیتوب ورکړي او زموږ د تبلیغاتو په زړه کې ورته ځای ورکړي.

دریم واقعیت: د "پخواني" (ګوند) په سپکولو او ردولو او له هغې څخه د ځان بېلولو سره، انحلال غوښتونکي ځانونه رفورمیزم ته مقید او محدودوي. نن سبا، د رفورمیزم او د "پخواني" نفي کولو تر منځ اړیکه یوه روښانه خبره ده.

څلورم واقعیت: همدا چې د کارګرانو اقتصادي غورځنګ د رفورمیزم له پولې اوښتې شعارونه راپورته کړي، د انحلال غوښتونکو غضب او حملې پاروي (وایي "لېونتوب"، "اوبه په ډانګ بېلول" او داسې نور او داسې نور).

پایله یې څه ده؟ په وینا کې، انحلال غوښتونکي، رفورمیزم د یو آر (اصل) په توګه نه مني، خو په عمل کې په ټولو برخو کې هغې پسې نخښلي. له یوې لورې هغوې مونږ ته ډاډ راکوي چې اصلاحات د هغوی لپاره هر څه او ټول هدف نه دی، خو له بلې لورې، هر کله چې مارکسیستان له رفورمیزم څخه مخکې ځي، رفورمیستان پر هغوی بریدونه کوي یا د اعتراض غږ پورته کوي.

خو د کارګر طبقې غورځنګ په ټولو برخو کې د پرمختګونو بهیر دا ښیي چې مارکسیستان نه یوازې له قافلې شاته پاتې نه دي، بلکې له کوم شک پرته له اصلاحاتو څخه د عملي ګټې پورته کولو او د اصلاحاتو لپاره د مبارزې په لومړي کتار کې ودریدلي دي. د کارګري فراکسیون په کچه د دوما له ټاکنو اخیستې، د دوما دننه او له هغې څخه بهر زمونږ د استازو د ویناوو پورې، او بیا د کارګري مطبوعاتو په لارې اچول، د بیمې ریفورم څخه ګټه پورته کول، تر ټولو لویې کارګري اتحادیې؛ د فلزاتو د کارګرانو اتحادیه په لاس کې اخیستل_ هر چیرې مارکسیست کارګران د اصلاحاتو لپاره د مبارزې او د هغوی پارونې، سازمان ورکونې؛ په مخامخو، چټکو "ورځنیو" کړنو کې تر انحلال غوښتونکو مخکې دي.

مارکسیستان په نه ستړې کېدونکي توګه کار کوي، د اصلاحاتو د عملي کولو او له هغې څخه د کارولو لپاره هیڅ ډول "شونتیا" له لاسه نه ورکوي، نه یې محکموي، بلکې په ملاتړ سره، د سختیو په ګاللو سره ، په پرګنیزې اقتصادي مبارزې او داسې نور کې له رفورمیزم ها خوا ترویج او پارونه تر سره کوي. انحلال غوښتونکي چې له مارکسیزم څخه جلا شوي، له بلې خوا د مارکسیستي بنسټونو پر شتون؛ د مارکسیستي انضباط په تخریبولو، او له رفورمیزم او یو لیبرال- کارګري سیاست څخه په پلوي سره، یوازې د کارګر طبقې د غورځنګ په ګډوډولو بوخت دي.

له دې هم باید سرسري تیر نشو چې په روسیه کې رفورمیزم په یوه ځانګړي بڼه کې هم راڅرګندیږي، په دې شرط چې د اوسنی روسیې د سیاسي وضعیت بنسټیز شرایط د نننی اروپا سره په یو ډول فرض کړو. د یوه لیبرال په اند دا ډول انګېرل مشروع

دي، ځکه ليبرال په دې اند دی او ادعا هم کوي چې "د خدای شکر، اساسي قانون لرو". کوم ليبرال چې ټينګار کوي چې د اکتبر ۱۷ *** وروسته، هر ګام چې دموکراسي له رفورميزم څخه هاخوا پورته کړي، لېونتوب، جنايت، ګناه، او داسې نور دي، د بورژوازي ګټې بيانوي.

خو دا د بورژوازۍ هغه نظرات دي چې زمونږ انحلال غوښتونکي يې په عمل کې پلي کوي، هغه انحلال غوښتونکي چې په پرله پسې او سيستماتيکه توګه، د "ښکاره ګوند" او "قانوني ګوند" لپاره مبارزه او داسې نور، د (کاغذ پرمخ) روسيې سره "تړي". په بلې وينا، د ليبرالانو په څېر، دوی روسيې سره د اروپا اساسي قانون د تړلو جارچيان دي، **بې له دې** چې هغې مشخصې لارې په پام کې ونيسي چې د نسلونو او ښايي په څېنو ځايونو کې په څو پېړيو کې د دې لامل شو چې په لويديځې اروپا کې اساسي قانون ومنل شي او ځای پيدا کړي. هغه څه چې ليبرالان او انحلال غوښتونکي يې غواړي په اصطلاح دې ته پاتې کيږي چې غواړي ولامبي خو نه غواړي چې لامده شي.

په اروپا کې، رفورميزم په واقعيت کې د مارکسيزم د پرېښودلو او د هغې پر ځای د بورژوازۍ د "ټولنيز سياست" د رامنځته کولو په معنی دی. په روسيې کې، د انحلال غوښتونکو رفورميزم، يوازې همدا معنا نه لري، دلته رفورميزم د مارکسيستي سازمان له منځه وړل او د کارګر طبقې دموکراتيکو چارو سره مخه ښه کول دي، معنا دا چې د هغوی پرځای د ليبرال- کارګري سياست راوستل دي.

------------

* پراودا ترودا، دويمه ګڼه، د ۱۹۱۳ کال د سپټمبر دولسمه

** په افغانستان کې هم دا وخت ځينې کيڼ اړخو سازمانونو د بورژوازۍ رفورميزم ته مخه کړې ده او د افغانستان د زيارکښو کارګرانو او دهقانانو په منځ کې له دې لارې طبقاتي روحيه وژني. دا سازمانونه د کلينک، روزنتون، تمځايونو او ښوونځې په جوړولو او د کمکي موادو په ويشلو بوخت دي (دوې کوښښ کوي چې نننی ټولنه وساتي او عيبونه يې له منځه يوسي او ددې کار لپاره ځينې **خيريه کارونه** او ځينې نور يې د **رنګينو ټولنيزو اصلاحاتو** وړانديز کوي او د ټولنې د سازمان د اصلاح په پلمه، د دې ټولنې هماغه زوړ بنسټ ساتي. **دا بورژوا سوسياليستان هم بايد تل د کمونيستانو تر بريد لاندې راشي، ځکه هغوې د کمونيستانو دښمنانو ته خدمت کوي له هغې ټولنې څخه ملاتړ کوي چې کمونيستان يې د ړنګولو هوډ لري**. د کمونيزم اصول، انګلس) چې دا هڅې د هغې ټولنې د ړنګولو پر ځای چې کمونيستان يې غواړي، د ټولنې هماغه زوړ بنسټ ساتي.

همدا ډول دا سازمانونه په دوما کې د بلشويکانو د ګډون په پلمه د اوسني ښکيلاکي پارلمان او ولايتي شوراګانو په ټاکنو کې ګډون کوي، خپل "ښکاره" او "قانوني ګوندونه" لري او په دې توګه ادعا کوي چې "د خدای شکر، اساسي قانون لرو" او معلومه نه ده چې دا "ښکاره او قانوني ګوندونه" تر اوسه پورې څومره توانيدلې دي چې د مزدي مريتوب او ښکيلاکي مريتوب طبقاتي او ملي مبارزه چټکه او پياوړي کړي.

*** د ۱۹۰۵ اکتبر له عمومي اعتصاب وروسته، تزار په ۱۷ اکتبر کې يوه وينا صادر کړه چې په کې د "د فرد د حقيقي حقوقو نه زيانمن کيدونکې مدني آزادۍ، د عقيدې ، وېنا، د انجمن او تشکيلاتو جوړولو حق" ژمنه شوې وه. د تزاريزم پلوي ګوند (اکتبريسټانو) دا وېنا د خپلو کړنو اساس وګرځوله.

